**د کتاب پېژندنه:**

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم | : د لمبو کلی |
| شاعر | : اسدالله زمری |
| د چاپ تاریخ | : ۱۳۷۹ |
| لمړی چاپ | : ۱۳۷۹ |
| تیراژ | : ۵۰۰ جلد |

# اهداء

زما سوځېدلو کلیوالو ته !

د انټير نيټ په مخ ترتيب او ډيزاين کوونکې : مړوند

# سګروټې

دزړه تنور کې مې سګروټې دې بلیږې پسې

په سر پرتې مې درنې ګټې دې درنیږې پسې

د وخت شپیږې راوریږي مې د روح په رخسار

په تن راوښتې راته ختې دې پلنیږي پسې

92/10/26

# مینه او کرکه

دژوندانه دترخوزهرو....

له سرو وینو ډک دی !

دزمانی دکړاوونو په منګلو کښی ښکیل،

چی ددی سوی ګوګل تنګ محیط ئې لا ښکیکاږی

ورته حیران یمه زه

چی دی یوه موتی دغوښو اورګونو ټوټی،

ټولی نړی نه لادرنه او ستره

له ښو او ښکلو سره،او له بدیو ځینی

څنګه دا ستره مینه؟

څنګه دالویه کرکه؟

سره یوکړی او ځای کړی ئې ده خپل زړګی کې؛

پدی وړوکی ځای کې.

ورته حیران یمه زه؛

ورته حیرانه نړی....

۲/۱۴/ ۹۳

# د هجرت شپه

خدایه څومره دی اوږده د غم دا شپه شوه

له پیرۍ نه ئې اوږ ده هره شیبه شوه

ورته عمر د عیسی زغم د یونس را

چې مې ډکه د زړګې د زغم کاسه شوه

۹۳/۸/۱۷

# افغانستان

اور پری بل ؤ له پخوا نه خو اوس سکور شو

د نیستي غرڼئی په درست جهان کی خپور شو

ټول د مرګ او بد بختی فریاد فریاد شو

خوږ وطن می، دی خوارډه ولس ته ګور شو

۲۲/۸/۹۳

# افغان مهاجر

لــه وطن نه لری پروت یم لکه مړي

د غـمـونـو تـور تـوفـان پـه مـخـه کړي

شی هر قدم چي ږدم غزي می په پښو

یتړی د غربت د ژوندون بارکړم ستړی

۹۹/۸ /۲۲

# افغان ولس کړيکه

د کاله په انکړ کې راته مرګی شـــو

د کـلـو د سر د ښمن مې سکنـــی شـو

نه می وس د کوم پاڅون شته، نه د ناستې

د وطن هر يو قدم مې تورلوګـــی شـو

۹۳/۸/۲۲

# د طاعون په کام کې

نه د مرګ د پنجو ښکار شوم نه ژوندی یم

د وطــن د کنډوالو یو تـــور کودی یــم

د غربت د طاعون کام کې یــم لــویــدلــی

په دي لوی جهان کې تولو ته پردی یم

۸/۲۲/۹۳

# سوال

په وطن مو راخپره توره و باده

په هر کور کښې د مرګ او ویر ژړا ده

د نوکرو نوکران مو باداران شول

خدایه دا مو بیا د کوم جرم سزا ده

۹۳/۸/۲۲

# وطنه!

داد دځمکی په سر جوړ جنت:آلمان کې

لکه پروت چې یم دغم په تور زندان کې

نه غړیـــږی یـــې لیـــدو ته زما سترګې

همیشه دی یم وطـــنـــه پـــه آرمان کې

دتا مینی مې په ټـــول بـــدن ،اوربل کړ

دسوز چیغه می خـوره شوه په آسمان کې

ستا په یاد می دزړه ویـــنی و هـــی داری

راته سوزی می هډونه سـتا هجـــران کې

چی به نوم دخپل وطن وربـــاندی کیږدی

داسی ځای به پیدانه کړی ټـول جهان کې

۹۳/۸/۲۳

# لویه خدایه

خـــلیـــفه کـــړ تا پـــخپـــله په جهان کې

تااشرف المخلـــوقات کړ پـــه قـــرآن کې

اوس چې سوځی تل درنګ، نژاد توپیر کې

دادی څه نـفرت ګـډ کړی پـــه انســـان کې

ورور دی وواژه دورور پـــه لاس په کـــرکه

داوحشت خومونده نه شی په حیـــوان کې

چې دی ورک کړ دنیستۍ په تور ګرداب کې

څه ګناه دی وه لیـــدلی پـــه افـغـــان کې

کـــه دی جـــوړ زما وطـــن ځیـــنی دوزخ کړ

ماکـــړه ښـــخ ددی دوزخ په ګورســـتان کې

۹۳/۸/۲۳

# د اوښکو تکل

تودې اوښکې مې له سترګو وهی داری

بـــنــــدوی ئـې نـشــی هیڅ د بنو باری

د نـــظـــر بـه مـــخ پـردې راته راکاږی

راتــــه ښــئــې دوطــن دتـلـلـو لاری

۹۳/۹/۱۴

# د زمانې ناخوالې

که هر څومې د ژوند شپې ورځې شې تیرې

ناخوالې د زمانې مې نه شې هیرې

نه سکون کې په قراریم نه سفرکې

نه پوهیږم چې وتښتمه چیرې

مرګ نه نه لرمه ویره هیڅ قسم دې

چاپیر کړی یم د ژوند د ساتو ویرې

د وطن خوږوالی اوس راته څرګند شو

د غربت بلا چې شوی رانه چاپیرې

د خپل وران وطن ایره به پری ورنکړم

که هر څو مره شی ښکلاوې د لته ډیرې

۹۳/۹/۱۴

# د وطن په یاد

که مې نصیب شی یو ځل بیا کله دیدار د وطن

غیږ کې به کښیکاږم هر بوټی او خار د وطن

د بل په ملک کې که جنت وی شپه مې نه تیریږی

د نورو قصر نه بهتر دی تور مزار د وطن

تر څو به سوزم د غربت په تناره : المان کی

خدایه او به مې کړی په بوټو د ګلزار د وطن

ښکلی وطن، مغزور ولس مې نن تالا والا شو

ورک شو هغه چې ئې اخیسیتی دی ازار و طن

زړه راته وائې چې ځه والو زه په غرو ، رغونو

ګوندی پیدا کړی سر د روکی چیرته لار د وطن

ای د ملکونو خدایه !ای د دی دنیا مالکه !

کله به یو کړی د افغان ولس په کار د وطن ؟

۹۳/۹/۱۴

# دلته او هلته

دلته چې وینم ټول وطن دی په ګلونو کې ډوب
یاد ته مې راشي خپل هیواد چې دی سرو وینو کې ډوب
دلته اسمان ته د ختلو تکلونه کیږی
زما ولس د شهیدانو په قبرونو کې ډوب
دلته د ژوند لپاره هڅې کیږی شپه او ورځ کې
هلته واړه زاړه ، ځوانان دي ټول مرګونو کې ډوب
دلته مقام نه د انسان ستره نمانځنه کیږی
هلته هر څه دي د وحشت په تورتمونو کې ډوب
دلته ځاریږی،یو د بل نه تش د «مینې» په نوم
هلته دوه ورونه په کینو او نفرتونو کې ډوب
کله به ورسیږی پای ته د افغان غمیزه ؟
کله به هم زمونږ هیواد شي سرودونو کې ډوب

۱۹۹۳/۹/۱۶

# آشنا

ته مې يې د مينې الهه ته مې مولا د زړه
ته يې تلوسه زما او ته مې يې ، سودا د زړه
ته د محبت د باغ ګلونو ته د رنګ جلوه
ته مې يې د ژوند بهانه ، ته مې مسيحا دزړه
ته ښکلې نغمه يې چې د روح په ګوتو جوړه يې
ته يې ترنم ، ته ترانه ، ته مې غوغا دزړه
ته د کوه قاف پری او ته يې د جنت حوره
ته مې د خوښيو جام او ته مې يې سوما دزړه
تا ته دی خوښۍ شی ددنيا او د عقبی نصيب
ته چې مې په غم د زمانې کې ئې اشنا د زړه

۱۹۹۳/۹/۱۶

# جنت او دوزخ

دې آزادۍ نه خپل زندان ښه دی
له دې ګلشن نه خپل ډیران ښه دی
که جرمنی دی د دې ځمکی جنت
ترینه دوزخ: افغانستان ښه دی

۱۹۹۳/۹/۱۸

# د نیشې خوند

ځان مې په خم کې د شرابو لمبول غواړم
دا ډیر غمونه د دنیا لږ هیرول غواړم
د عمر تږی، د زمان د دښتو ستړی کوچی
یو ځل مې ژوند کې دغه تنده ماتول غواړم
ځینو ته یو څاڅکی شراب هم د کاسو ځای لري
زه یې موجونو کې د خپل سر آزمویيل غواړم
یم له ساقي نه پوروړی د شرابو یو جام
د بل له پاره یې د ځان مریې کول غواړم
خمار ځپلي ته معلوم دی سچه خوند د نیشې
د زړه په ژبه د مغزونو پوهول غواړم
سترګه د جام که د مینا لاری ته تکه سره شوه
زه یې د سرو شونډو خندا کې ښکلول غواړم
کومه نغمه چې خدای ځای کړې د ښیښې په خوله کې
د احساس غوږ باندی یې روح ته اورول غواړم
د سرو شرابو لږ غندل هم نا پوهي ده ډیره
هوښیار سړی یمه په سر یې اړول غواړم

۱۹۹۳/۹/۲۱

# هلته او دلته

هلته له هری خوا باران غوندی مرګونه اوری
دلته چې هر لوری ته ګوری سره ګلونه اوری
هلته لمبی او لوګی خیږی د افغان له کوره
دلته فضا ،ځمکه ، اوبو باندی عطرونه اوری
هلته د وینو تور سیلاب دی ټول ولس اخیستی
دلته اختر دی، د ژوندون ښکلی رنګونه اوری
هلته د اوښکو په توفان کې یو ولس ډوبیږی
دلته کوڅه په کوڅه، کور په کور خوندونه اوری
هلته توپک غړیږي ، ژبه د انسان ګونګه ده
دلته د سولی سیوری خپور دی سرودونه اوری
هلته کړیږی انسانان د جنګ په سره دوزخ کې
دلته په دې دنیا هم واړه جنتونه اوری
هلته نازل هم د خالق هم د مخلوق غضب دی
دلته د قهر پر ځای هم د خدای رحمونه اوری
هلته سوځیږی د کلتور پښی د جهل اور کې
دلته د شرق له وریځو جوړ لوړ فرهنګونه اوری
ای د افغان ستره ملته لږ را وخوځیږه !
په تا د پلار او د نیکونو پیغورونه اوری

۱۹۹۳/۹/۲۳

# د وحشت دیو

دا څه حالت دی چې دې نوی چنګیز راوسته په کور د افغان
دیو د وحشت دی یاغی شوی په هر لور د افغان
هر څه تالا کړل ددې سپینې بلا سرو لاسونو
ګور کې نا ارامه دی هر پلار او هره مور د افغان

۹۳/۹/۲۹

# د زړه سوز

که مې یوه شیبه د زړه سوز کوم قلم واخلي
لکه د شمعې به اور، سر نه تر قدم وا خلي
چې هم جهان ، هم مې جانان له ځانه ورتلم
څوک به زما له اوړو دغومره درونډ غم واخلي
یو ځل به نه شي د مراد غوټۍ ګلونه کله
د ژوند نیالګی که مې د غم له اوښکو نم واخلي
د حوادثو توفانونو مې کړه کړله ملا
څراغ د عمر به مې څنګه تاب او دم واخـــلي
د حسرتو پنجې به راکاږي مرئ د امید
د زمانې دیو چې مې هیلو ځـینــې دم واخلي

۹۳/۹/۲۹

# د حسرت اوښکه

او ښکه د حسرت چې د غم سترګې نه جدا شوله
سوز ته د زړګي يې په ژړا خپله ژړا شوله
و دريده، وريږديده، وښوئېده خاوروته
سترګو د احساس ته د ماتم د مخ ښکلا شوله
عمر ته يې، نيم نفس ،خندلو ته خوله جوړه کړه
شوندې يې ترلې وی چې لاړله فنا شوله
جوړه ترانه شوه د بسمل مری کې بندوه
ښکلې دردانه شوه د صدف د زړه بلا شوله
پټې تويوه اوښکې زمريه د ګوګل تل ته
اور به ورنه واخلې که خبره تری دنيا شوله

۹۳/۱۰/۱۲

# زه

سره اوښکه د غم وم چې په مخ د دنیا پریوتم
پرخه د سحر شومه په غرو او صحرا پریوتم
یو سوی فریاد وم له درد من زړه نه را پورته وم
دود د اوسیلو شومه په مخ د رڼا پریوتم
مات ساز د ماتم وم د ویر کور کې غړیدم غلی
سوز د غمجن زړه شوم په لیمو د ژړا پریوتم
هیره افسانه وم له غوږونو او له خولو پاتی
پټه خزانه شوم وران انګړ کې د چا پریوتم
لوند خیری ګریوان وم د زخمي ټټر په وینو سور
څیری لنګوټی شوم په اوږو د ګدا پریوتم
زه د مات باڼه په څیر اغزی د چا د سترګو وم
تور لا چې لونګ شوم، خو اوربل نه جدا پریوتم
بخت دی که تقدیر او که خالق مې څوروی څله؟
غیږ کې د جانان که بی خبر له عقبا پریوتم
مست ګرځي یارانو د خوښیو پیمانې په لاس
خیر دی که زه لاړم په پنجو د بلا پریوتم

۹۳/۱۰/۱۵

# په مینه

جانانه راکړه د سرو شونډو پیمانه په مینه
چې کړمه هیره د غمونو زمانه په مینه
دشونډو جام کې دی د مینې شراب راکړه په خوند
د حسن شمعی چې دې شمه پروانه په مینه
راکړه عسل د خوږو شونډو درنه وګرځمه
راته مې ماته کړه د تریخ ژوند زولانه په مینه
مست مې کړه داسی چې خوښیو کې شم ډوب له شوقه
څو درته واوروم د مینی ترانه په مـیـنـه
راکړه چې ماتې نه کړم بیا کله توبې له میو
څوپاتی نه شی د شرابو بهانه ، پـه مـیـنـه
ته یې شراب،ته یې د بنګو پیاله ، ته یې سوما
د تا له پاره یم دیره په میخانه پـه مـیـنـه

۱۰/۱۵/۹۳

# آنچه خوبان همه دارند تو تنها داری

ستا د مینې په هر خم کې ډېر سوزونه ،ډېر خوندونه
ستا د حسن په جلوو کې، سرې سکروټې-انګارونه
ستا د قهر په انګار کې، د عاشق د سوځېدو اور
ستا د ناز په لطافت کې د وریښمو خروارونه
ستا د مخ د رنګ په باغ کې، د ګلونو باغچې ټولې
ستا د زلفو په تیارو کې ، توری شپې او تورتمونه
ستا د سترګو په ګردش کې،ددنیا د خوځېدو راز
په ښکلا کې یې ویدې دې هوسۍ ګانې، نرګسونه
ستا د غاړې له مینا نه، د مینا غاړه ده ماته
ستا د قد په رسایۍ کې ټولې سروې-شمشادونه
ستا د غړله ولولو نه، زما روح ته آرام راشي
ستا د سرو شونډو په خوند کې دي سوماوې، شرابونه

۹۳/۱۰/۱۵

# برخه

د خوښۍ برخه کې مې غم ولیږه
ما غمځپلي ته همدم ولیږه
بل چا ته نه ټیټیږي لویه خدایه
زما سجدو ته یو صنم ولیږه !
له وچ ګوګل نه مې لمبې جګیږي
لږ یې تسل: د اوښکو نم ولیږه
د زړه داغونه بل علاج نه لري
ورته د خپل وصل ملهم ولیږه
ستا د هجران لحظې کلونه ښکاري
یا خپله راشه ، یا لږ زغم ولیږه
چې مې د ژوند اسره د تا مینه شوه
اوس یې بقا ته خپل کرم ولیږه

۹۳/۱۰/۲۱

# شیبې

څومره شوې اوږدې د انتظار شیبې
ورکې شوې تیاروکې د سهار شیبې
وصل که هجران که دواړه سوځي ما ؟
کومې دي خاونده د قرار شیبې ؟!
محوه دې ومزه ، په تلو دې پوه نه شوم
څومره دې خوږې وې د دیدار شیبې
ما درته د زړه دراز ویل غوښتل
لاړې مې له لاسه دا ظهار شیبې
څو مې دی لیمو کې ستا تصویر تازه
ښکاره راته هر وخت د بهار شیبې
یو ځل که دې بیا په سترګو ووینم
ستا د هجر ورځې دي ددار شیبې

۹۳/۱۰/۲

# د سيند پري

چې مې د او ښکو په موجونو کې پيدا کړلې ته
د سيند پرۍ وی ما د خپل عشق مولا کړلې ته
د جنت حوره د بش ر په بڼه راغلې ماته
ما د ژوندون و تروږمیو ته رڼا کړلې ته

۹۳/۱۰/۲۵

# ویره

اوښکې مې په مخ چې د هجران له ویرې غلې ځي
زړه ته مې څه وایې په ګریوان له ویرې غلې ځي
شور د محبت مې دې ساتلی په مغزو کې پټ
کریکه د جنون مې په بیابان له ویرې غلې ځی
سترې شوم لټون کې ستا ثاني مې پیدا نه کړله
سترګی مې په ننګ د دې ارمان له ویرې غلې ځي
تا چې یوه ورځ کله ونه وینم سو ځیږمه
چیغه مې له سوزه تر آسمان له ویرې غلې ځي
اوښکو غمازي کوله ، مور دی په دیدن نه شوم
تنده د دیدار مې په شریان له ویرې غلې ځي
ویره مې د تا د پاکې مینې رسوایې کې ده
ما رسوا نه ویره په میدان له ویرې غلې ځي

۱۰/۲۷/ ۹۳

# د زړه لمن

د زړه لمن کې مې داغونه پراته
پکې جهان جهان غمونه پراته
د ليو نتوب له کاڼو ډکه ښکاري
که دې د تا دميني غرونه پراته
هرى اداء دې دى پرې اور بل کړی
له هره نــــازه دې ګلونه پراته
چې مې ځولۍ کړله د وصل خير ته
ورکې د اوښکو اميلونه پراته
اورئې اخيستی دی له خپله لاسه
ورته دي سوي ارمانونه پراته
لږ دی قدم پکی په پام جګوه
دلته د هيلو دي مات زړونه پراته

۹۳/۱۱/۱

# د مرګ ګواښونه

ای د جنت حورې ته که ما باندې نازونه کړی
زړه ته مې پام ساته ، مات د هیلو به مې زړونه کړی
تا چې له غرور نه د لمر تیک په تندې وواهه
خو به را خــپاره په دې سوالګرو تورتمونه کړی
تا نه که جلوی د پسرلیو رنګ او بوی آخلی
پام ! چــې او سیلې مې د خزان ساړه بادونه کړی
لاس د لو تماری که د زړښت اوږد شو د تا په لور
ماتـــــه ځوانیمرګ به ټول د وصل تکلونه کړی
راشه چې امید مې ژوندون په پښو ودریږی
څو به په فراق کې ماته ژوند د مرګ ګواښونه کړی

۹۳/۱۱/۱

# خاورې

کله چې له خاورو سره خاورې مې هډونه شي
هره یوه ذره به ئې ستا راتللو ته ګلونه شي
ګرد زما د خاورو که دې پریوت د رخسار په ګل
خاورو کې به سره ، زما له شرمه رخسارونه شي

۹۳/۱۱/۲

# داد

که سُوری مې له حالاتــو نــه لــړمون دئ

رانــه ورک نــن او سـبــا او که پروندئ

خـــوچــې تــه مــې ئې په خواکې زما مینی

له خوښۍ او ثوکالۍ مې ډک ژوندون دئ

۹۳/۱۱/۲

# دلمبو فوارې

ای بې روحه ، بې احساسه سړې ځمکې !

داسور اور د دې ساتلی څله زړه کې؟

فوارې به دلمبو وې جوړې کړې

چې مې مور کښېنوته ستا په تیاره تله کې

۹۳/۱۲/۱۰

# د مور د مړینې سوال

په محشر کې چې ژوندي بیا ټول جهان شي

هر مخلوق لپاره جوړ ستـــر امتـــحان شي

زه بـــــه سوال د خـــپلې مور ور ځنې وکړم

خپله خدای به مې ځواب ته هک حیران شي

۹۳/۱۲/۱۰

# تعجب

په یوه سپرغۍ مې چیغه ځي آسمان ته

په یو وور خورې وایم اور ورکړم جهان ته

ښنګه دود او ایره نـه شو دمور مرګ کې

زه حیران یمــه داخپل ناتــوانه ځان ته

۹۳/۱۲/۱۰

# د مور په غم کې

ای سیندونو زه له تاسي نه حه غوارم !

ټول شی وچ چې زه د مور په ویر کې ژارم

که مې ډوبه شوه دنیا اوښکو کې ټوله

زه ګرم نه یم چې ئې په غم له ځانه لارم

۹۳/۱۲/۱۰

# په خپل کور کې مسافره

مسافره ورنه لاړل اولادونه
شوه یوازې، لور په لور ئې کړاوونه
نه څوک پاتې شول چې وئې پوښتي حال تری
چې ټکور ئې کړي د زړه ژور زخمونه
نه چې پاکې ئې کړي ترمې ترمې اوښکې
په زخمي روح باندې ئې وا وښتل غمونه
تنګ ګوګل کې ئې نفس په سوځیدو شو
په بیمار بدن ئې راغلل سخت دردونه
په سختیو کې ئې ویلی حوصله شوه
شول ئې بند سوی سینه کې فریادونه
بیکسۍ کې مرګ تری هم حیا ونه کړه
نامردۍ کې ئې پرې وکړل ګوزارونه

۹۳/۱۲/۱۰

# زما مور

د دنـــیا غـــمـــونه ئـــې وا چول په زړه کې

زرا غـــزی شول ورته شـــنه په هریو پله کې

د مرګـــی بلا پـــرې نـــه ښـــوده نفس ته

د زړه پاتې ئې شول په زړه، د خولی په خوله کې

۹۳/۱۲/۱۸

# زما دعا

تور لـحـد دې ځراغانشه زما مــورې

په محشر دې مل سبحان شه زما مورې

جنــتــونه دې پښو لاندې پــراتـــه وه

په فردوس کې دې مکان شه زما مورې

۹۳/۱۲/۲۱

# زما قسمت

ای خاونده ددې دوارو جهانونو
لوغړن کړم دژوندون ډیرو غمونو
بې له او ښکو مې بل څه نه دي لیدلي
کړ مې ستونی څیری ډیرو فریادونو
د ځوانۍ په فصل پوه نه شوم چې کوم وو
یم ګیر شوی د زړښت په عذابونو
زما برخه خوشحالي دی کړه دنورو
کړ نصیب دې زما غم د څو نسلونو
دې انصاف ته زه حیران یمه خاونده
کړ قسمت دی راته ډک له ماتمونو
چې به کله لا رڼا په ما دا شپې شي
نور خو ورڼد کړمه بی پایه تورتمونو

۹۳/۱۲/۱۹

# ددنیا غمونه

ځوروي مې د دنیا غمونه څومره ؟
خوځوي مې د زړګي دردونه څومره؟
د غربت په مصیبت کې یم ګیر شوی
سوځوي مې د نیستۍ اورونه څومره؟
د ژوندون خوښۍ مې ونه لیدله کله
ډوبوي مې د وحشت موجونه څومره؟
ددنیا په مخ په توره جامه ګرځم
شرموي مې دعقبا ننګونه څومره؟
نه شوم یار او نه اغیار د چا په ژوند کې
کړوي کې د خپل ځان فکرونه څومره؟
چې به کله لا رسیږي خپل آخرته
دردوي مې هر نفس ، هڅونه څومره ؟

۹۳/۱۲/۲۱

# وطن سوزان

بریتونو وطن وسوزاوه ږیرو او

څه بې دینو څه د دین ټیکه دارانو

راخپری وی تر څو دغه توری وریځی

باران د تودو وینو سور خود به اوری

۹۴/۱/۴

# شراب

ځکه نوم ورباندې ایښی چا «شراب» دی
چې ترکیب کې یې څه« شر» او یو څه «آب» دی
لا دې شونډو ته ور وړی یو ګوټ نه وی
چې جوړ کړی دې دی شر تللی دې آب دی

۹۳/۱/۱۸

# یو بل زړه

ای خالقه د هــرچا د قسمتونـــــو
ای ویشونکیه د خوښیو او غمونو
راته راکړه یو بل زړه پاتی ژوندون ته
زوړ مې ویلې شو له ډیرو کړاوونو

۹۴/۱/۱۸

# بر تر بور

هر سحر مشرق په خپلو وینو سور دی
د تاراج او تباهۍ یو بل تنور دی
د مغرب لمن دده په وینو سره شوه
دی یې ستر خوني دښمن او بد تر بور دی

۱۸/۱/۹۴

# د هیلو کلی

راشه ته زما دسوی زړه کوربه شه
ښکلې هیلې په خپل کلي کې دیره شه
د صدف په څیر به خپلی وینی درکړم
ته زما د آرمانونو دردانه شه

۹۴/۲/۲۷

# لاشخور

د وطن په تن مې بل د ځګرې اور دی
سوځېدلی د زوی مرګ کې پلار او مور دی
د وحشیانو پاچاهۍ کې هر څه لوټ شول
مجاهد مې د مظلوم ولس لاشخور دی

۹۴/۲/۲۷

# پرله پسې فاجعې

اور دې بل کړ د افغان ولس په کور
څه دې کیوسته بیا تل ته د تور ګور
آواره دې د جهان په هره خوا کړ
خدایه څه به لا وروښیئ ته نور ؟!

۹۴/۲/۲۸

# د وطن پسرلی

پسرلی دی هره خوا ګلان غوړیږي
د رنګونو او ښکلا محشر جوړیږي
زما وران وطن کې ګل او شنیلی نشته
چې د وینو سور باران پری راوریږی

۹۴/۳/۱۹

# محشر

غړېدلې ده شپېلۍ د ستر محشر
چې وطن شو د افغان زیر او زبر
هر انسان دی پکې څو ځلې مړ شوی
هرې لوېشتې نه جوړ شوی دی سقر

۹۴/۳/۱۹

# خوار شوی افغان

خدایه ښه دې کړ ، خوار عظیم افغان
چې نوکر شو دایران ا و پاکستان
دوی چې نه نیول هیڅ چا په نوکرۍ هم
دې بې ننګو کړل زمونږه بادار ان

۹۴/۳/۱۹

# د مجاهد له لاسه

دی د سوال کتري ته ناست اوس ستر افغان
ده محتاج کړ د ایران او پاکستان
لعنتونه د تاریخ پری را اوریږي
مجاهد شو بې غیرت او بې ایمان

۹۴/۳/۱۹

# وطندار ته

وطنداره له سوري زړه نه دې جارشم
ستا د هرې سلګۍ سوز ته سورانګار شم
د وطن او هر عزیز په داغ کې وسوې
کاشکې ستا د درد دوا ته لږ په کار شم

۹۴/۳/۱۹

# زما اوښکې

د زمان تیارو ته اوراخلی ، رڼیږي
د غمو اورته سوځیږي او بلیږي
زما اوښکې بې قیمته دردانې دي
په هر درد کې مې د زړه په حال پوهیږي

۹۴/۵/۸

# بې چارګي

بار د ژوندانه مې راته ماته غبرګه ملا کړله
يار مې هم له څنګه شو ګوښه ، راته ئې شا کړله
څه به پّه تودو اوښکو د زړه سکروټې توروم(۱)
کله چا ژړا د لوغړن د ټپ دوا کړله ؟!

تورول= لمسول/راويښول

# سوی ګلبوتي

زمونږ اوښکو سمندر  قوی څپه  نه لري ؟ !
کـه مو د غم ونه پـه دې ساحل ریښه نه لري ؟ !
ماو یل دنیا به پـه سر واخلي د جنون پـه لاسو
خو مو د کریکو سوز د چا غوږ ته اسره نه لري
اوس به یې ایستی وه زوږ بیخ د غم لړلې نړۍ
خو مو  تو فان  د  اوسیلیو  ولوله  نه لري
د ژوندانه لاری تړلې دي زموتږ  کیږدۍ ته
خو د  مرګونو  قافله  بل ځای دمه نه لري
پریږده چې وسپړي زمونږ د ژوند اغزی ګلونه
زمونږ د ملک سوی ګلبوټي خو نوده نه لري

۹۴/۱۲/۱۲

# د سو ځېدو سوال

کنګل کې و سوځم که په لمبو کې و سوځم ؟
حیران یم چې د ژوند کومو لمحو کې وسوځم ؟
بندي یم ددنیا د نا خوالیو په زندان کې
تر څو ددی تنور د اور څپو کې و سو ځم ؟
دردونه ، حسرتونه ، ارمانونه، سل غمونه
د کوم یو په لمبو د چا ایرو کې و سوځم ؟
خوږلن د محبت کې لوغړن د وخت غماز کړم
ددې کان د یا قوت کومو جلوو کې وسوځم ؟
ته څه د خیال جهان ته د خیالونو په څپو کې
ما پرېږده چې د وخت رڼو لیمو کې و سوځم
که خاوری او ایرې شمه ، وجو د مې پو پناه شي
دیدن ته به د تا ، په تېپېدو کې وسوځم
د حسن دې تو فان ته د یو زړه دودول څه دي
راځه چې سر تر پایه یې پښو کې و سوځم

۹۴/۱۲/۱۲

# ننګ

ننګیالـــیـــو تــه خو د غه ژوندون ننګ دی
په نیکونو ئې لــه نــنګه ګــور هم تنګ دی
غلامان دی شول ځوانان او پیغلی مینځې
د افغان ولسه وخت دی د غــورځــنګ دی

۹۴/۱۲/۱۳

# دنفاق ثمر

افغانانو سره یو کړی خپل لاسونه

سره وشلوی د شرم ځنځیرونه

دنفاق ثمر مو ولید د پـه سترګو

د دې شوم نیالګې راوباسئ بیخونه

۹۳/۱۲/۱۹

# افغانه پاځه

پاځه پاځه ای افغانه په پښـــو شه !

لږ په فکر کې د ننګ او د پـښـتو شه

د دیوانو د داړلو غاښ ور مـات کړه

ژغورندوی د خپل ټا توبی او بچو شه

۹۳/۱۲/۱۹

# ننی مجاهد

د فساد استاد ، د جهل ښه شاګرد دی
لوی قاتل ، وحشي حیوان او ښه زاهد دی
د پردیو ښه غلام د ځان دښمن دی
ښه یې و پیژنې دا شئ مجاهد دی

۹۴/۱۲/۱۹

# جرګه

ناخوالی دې زما چې په سلګو منلې دې
د تاتر خې ګیلې ما په لیمو منلې دي
د وصل د کعبې زیارت د تا چې مې نصیب شو
میرې مې د دې لارې په باغو منلی دي
سفر د ژوندانه کې چې مې ستاسترګې ډیوې دي
تیاری مې د سختیو په سپیدو منلي دي
د تا سلامتیا ته په ورو ورو دودیدل څه دي
ما سول د تا نظر ته په لبو منلي دي
د مینی اندازه دی یو زما زړګی ته لګی
چی غرونه د دنیائی په اوږو منلي دي
له زړه نه دې قربان شم چی زما غمو نو وخوړ
خوښی دې هم زما په مسېدو منلي دي
د هیلو د کاروان جرس د عذر پړه غواړی
رتلي دګنا هو په جرګو منلي دي

# د غرب شفق

دا د شرق دو ینو رنګ دی چې د غرب په لمن ښکاری
دا د شرق تالا ګلان دي چې د غرب په لمن ښکاری
د سپیرو میرو په تاو کې ، هلته هره تیږه سوځی
دا د شرق د مټ قوت دی چې د غرب په عدن ښکاری
د باروتو تور لوګی دی ،چې د شرق له کاله خیږی
د لمبو روښانه رنګ دی چې د غرب په ګلشن ښکاری
د جلی د او ښکو موج دی چې بهیږی په دوناو کې
د پا میر د سر شمله ده چې د غرب په بدن ښکاری
د افغان -هندو په وینو هندوکش- ایوریست غرق شول
د کشمیر د نافی بوی دی چې د غرب په ختن ښکاری
د ویتنام- کوریا په تن لا د بمو نو چری ځښی
د چیچن۔ایران انسان دی چې د غرب په خوږلن ښکاری
ورغلی سره نه دی د عرب د زخم شونډې
د تاجیک۔سیلون مړزوی دی چې د غرب په درشن ښکاری
د راکټو قافلی دي چې روانې دي تل شرق ته
دا د وینو تور امیل دی چې د غرب په ګردن ښکاری
د جنګ اور باندی ئې جوړ کړ ، له دنیا ځینې دوزخ نن
د ګناه نه ډک جنت دی چې د غرب په وطن ښکاری

۹۵/۱/۲۰

# ځړنه

بیا د ی په سترګو کې د وصل تلوسې وکړه
بیا مې دزړه په سر ، داور بلې لمبې وکړه
بیا راته راکړه د ژوندون اوبه د شونډو جام کې
بیا مې د مړو هیلو په قبر ، ولولې وکړه
بیا دی د غږ په ترنم باندی عالم ژوندی کړه
د اسرافیل غوږ کې د مینې ترانې وکړه
بیا دی رسا ونه د عمر باغ کې وغوړوه
بیا د شمشاد په تن د سره حسرت نودې وکړه
بیا د خپاره کړه د ویښتو د ولونو ټول ګلونه
بیا په دنیا باندی د رنګ او بوی غنچې وکړه
بیا دی د حسن مرغلرې په نازو وپیبیه
په ټولو بیا دی د داغونو قافلې وکړه
بیا مې په مینه خواته راشه، بیا مې خپل کړه د ځان
زما په ټول بدن د مېنې کلمې وکړه
د بې مثاله ښکلا باغ دی تل بهار بهار شه
د وخت غازته په هر ګام کې زولانې وکړه

۹۵/۱/۲۴

# ژوندی مړی

هره هڅه مې رټلې، هره هیله مې ناکامه
هرنظر مې نامنلی، هره مینه مې ناکامه
دنامرادو امیدونو د قبرو په خاورو پروت یم
زه یم خپله ژوندی مړی، خپله مړینه مې ناکامه

۹۵/۲/۲۸

# د مینې داغ

د شهید زړه په جنازې باندې مې هېلې ژاړي
اوښکو اخیستی په سرملک دی سترګې وینې ژاړي
د نامرادۍ د تور خنجر په لاس سوری ،سوری دی
د بېکسۍ د زهرو جام کې ورته مړینې ژاړي
غني کاروان د امیدو یې په رڼا ورځ لوټ شو
شوی تلو سې ئې د مرګې په غم غمګینې ژاړي
د درد له تاوه د سینې قبر کې مړ ، تپېږي
په سوی حال ئې د ځیګر غوښې شوې خورینې ژاړي
خواره یادونه ئې له سره په ژړا ووتل
د مینې داغ چې په تندي د ماه جبیې ژاړي

۹۵/۲/۲۸

# د وفا عرش

د هجران په تروږمۍ کې د تا یاد راته ډیوه شي
د رڼا هره شغله ئې ، د غم زړه باندی نیزه شي
هیروم دی را یادیږې ، تل مې ذهن کې ر غړیږې
ستا نا خوالې مې په زړه کې د سره اور بله لمبه شي
د وصال هیله دې لاړه ، لکه تا هغو مره لیرې
په کوم زړه به بیا زما ، دې غریبی کورته میلمه شی
یو ځل بیا راشه په مینه ، راته جوړ مې وران جهان کړه
د وفا د عرش له پاسه دې د تا ځلی ښکاره شي

# بې حایه خواري

لمر په دوو ګوتو ستا ، چیرې پټېدای نه شی
ځان دې غولوې ولې ، مینه پټېدای نه شي
سل که زړه ته ووائې: لاړه دلدار هیرئې کړه
څوک چې وی د زړه څښتن هغه هیریدای نه شې

۹۶/۱/۳۱

# سو ځیدل

څه د مینی په خوږلن او انکار وسوم
څه د هجر په لمبو کې دلدار وسوم
چې ژوندون مې لکه شمعه سوځیدل دي
څه به وایم چې مې یار که اغیار وسوم

۹۶/۲/۱۵

# د هجران غم

که را ټول شي ټول غمونه د جهان
بیا هم نه رسیږي غم ته د هجران
زړه کړخت کړي لکه یخ د سلسبیل
ددوزخ په اور کې سو ځوي انسان

۹۶/۱۲/۱۵

# منزل او تسل

ستا د زلفو په هر تار کې هزار ولونه ، هزار زړونه
په کې ورکې کړي زړه لارې ، به کې ستړي شي مزلونه
له کاکل او له اوربل نه دې لوګی شمه ای ښکلې
چې مې دي نظر او زړه ته ،سر منزل او تسلونه

۹۶/۳/۱۰

# تاج محل

تل دې یاد د شوخو سترګو زما مل دی
چې مې ځاله د خیالونو ، ستا اوربل دی
چې زما د پاکې مینې ملکه شوی
زما زړه د تا د مینې تاج محل دی

# د يو افغان ځلمي سلګۍ

ور کتوب مې نه ياديږي ،ځلميتوب باندې بوه نه شوم
د زړښت په لار روان يم ، دي لرزان مې قدمونه
زما کلي کې تل بل وو د نفرت سوځند اورونه
زما کور ته تل پراته وو د کينې تور ځنځيرونه
زه ويده وم په اغزو کې ،ما پالنګ ليدلی نه دی
زما سر لاندی وه تيږه ، نه بالښت ،نه مړوندونه
زما هره هيله سترې، زما هر تکل ناکامه
زه ناکام يم پيدا شوی چې ناکام مې دي کامونه
سو ځيدل که کړيدل دي،که ژړاوې دي که ساندې
که ماتم دی، که څګيروي دي ،دي زما پخواني ملونه
زه له ګل سره پردی يم، پسرلی ته نا اشنا يم
د خزان ائينه کې وينم ، زه مې خپل ساړه آهونه
خوښۍ څه ده؟خندا څه ده؟ شوق او ذوق څه شي ته وائی
زه د غم په کاله لوی يم ، ما ته مړه دي دا نومونه
څوک خوښيو کې لوبيږي، څوک او سيږي په جنت کې
خو زما يوی سلګۍ ته ، کم دي واړه دوزخونه

۴/۱۵/۹۷

# د مينې حال

و دی سوم وصال باندی ، دود دی په هجران کړمه
حال د ليونۍ مينې ، څنګه دی بيان کړمه ؟!
نه دی وه وعده پر ځای ، نه دی انتظار تمام
څوک به مې فرياد واوری ، څيری که ګريوان کړمه
نه دی ښاپيری سيالی ،نه هم د جنت حورې
ای د يار يکتا حسنه !ځان ته دی حيران کړمه
نيم نظر کتو ته دې ، ټول عمر تېپير.مه
ستا پوره نظر نه به ،خپل ژوندون قربان کړمه
ته ای د ختن هوسۍ ،مه تريږه زړه نه مې
څو چې دا وحشی زمری ، تا ته په فرمان کړمه

۱۹۹۷/۵/۹

# نظر

ستا یا مې د مینې مرغلره ده
ستا خیال مې د زړه خوږه سندره ده
او ښکه مې له سوزه زړه کې وچه شي
غم کې دې له ټولو مروره ده
کله به له زړه نه راشې سترګو ته؟
دغه مې د ژوند خط او خبره ده
ستا هغه د قهر او عتاب اداء
ماته اوس خوږه او خوندوره ده
زه دې په وصال کې شاهنشاه ومه
اوس مې حال له هرګدا بدتره ده
دغه د فراق او جدائې حالت
ښکاري چې د چا له بد نظره ده
څو به د ی کړیږی غم کې ځاردې شم ؟
ستا زمری مجنون نه سر ببره ده

۹۷/۶/۱۹

# سترګې

سترګې چې دې پټې وي فتنې ښکاري
کله چې وې خلاصې ، پيمانې ښکاري
پټې سرې سکروټې وي ښه لاندې
وينې راته سرې بلې لمبې شکاري
پټې د غوټۍ په شان ښکلا لري
وازې د تازه ګلو غونچې ښکاري
کله چې ويده ئې ته د ناز په خوب
دواړه راته پټې خزانې ښکاري
څو چې دا دنيا ده ،وي دې تل رڼې
ماته د زمرې د ژوند ډيوې ښکاري

# قناعت

د شرابو خمخانې مې کړلې تشې
که ځواني وه که مستی وه زما بس ده
له پیالو ،جام او مینا نه په دنیا کې
ماته یوه شونده خوږه د لیلا بس ده

۹۷/۷/۱۸

# د وطن وږمه

ای د وطــن لــه ســتـړو دښـــتو نــه راغــلی وږمــې !
لــړاتـــه ووایـــه زمـــا هـغـــه خـتــن ثــنـگـــه وو؟
هــغـــه زمـــا د هـيلـوځـالـــه دی ښـــه ولــيـــدلـــه؟
هـــغـــه زمـــا د ســترگــوتــور،روح او بدن،ثنگه وو؟
هــغـــه انـــســـان چـــې يـې مـــلكـــو غـــلامـــی كـولـــه
مغرور پښتون، هوښيار تاجيک او ترکمن ثنگه وو؟
هـــغـــه تـــنكي ځـــلـــمي پــه ولـــي لا تـــو پـک گرځاوه ؟
هــغه پـــيـغــلوټي، سره اوس چـــال او چلند ثنگه وو؟
هــغـــه چـــې ټــول ورتـــه يـــزيـــد ،يـــزيد او شمر شوي
هـــغه حـــســـين،حـــســـين افـــغان هغه حسن ثنگه وو؟
هــغه د ډزو كـــنـــهـو ونـــكی غـــړلا اوس هـــم خـــپور وو؟
هـــغـــه د بم او دراكـــت ســـوری بـــدن ثـــنـــگـــه وو؟
هـــغـــه د خـــاورو نـــه جـــوړ كلـي چـې به شنه وو مدام
هـــغه چـــې تـــړی بـــه وو تـــل،ســـوی چـمن ثنگه وو؟
هـــغـــه ختـيـــن كـــور چـــې پـــه سر به ئې شنيلي ټوكيدل
هـــغـــه بـــيـــديا ، هـــغـــه صـــحـــرا ،هغه دمن ثنگه وو؟
هـــغـــه د تـــورو جـــگـــو غـــرونو ښاماران ژوندي وو؟
هـــغـــه هـــيـــبت ، هغه ښكلا ،هغه هسكمن ثنگه وو؟
هـــغـــه يـــاغـي مســتـو سيندونو درتـــه شور درنه كړ؟
هغـــه اوبـــه ، هـغـــه ثـــپـــه ، هـغـــه شـكـن ثـــنـگـــه وو؟

هغه لـه عطرو ډکه، هغه مزه داره خاوره

هغه فـردوس ، هغـه هغـه جنت، هغه عدن څنګه وو ؟

هغه هوا چې به نغمی د ژوندانه وی پکې

هغـه راحت،هـغـه مـسـتي، هغه چلن څنګه وو ؟

هغه نښتري ، چنـارونـه او د ولو ونـي

هـغـه څيړۍ، هغه شـيـشـم او نسـترن څنګه وو ؟

هغـه لعلونه، سره يـاقـوت او زمـرد څـنـګـه وو ؟

هـغـه لالـه، هـغـه د شـنـو دښـتـو ګلشـن څنګه وو ؟

هغـه د غرو د سر بـازان لا الـوتـل تـر اوسـه

هغه بلبل، هـغـه بـورا ، زاغ او زغـن څـنـګـه وو ؟

هـغـه وحـشـی او تـرئـيـدلـی هوسۍ چيرتـه لاړی؟

هـغـه زمريانو زړور ليوان، دښمن ،دښمن څنګه وو ؟

هـغـه زما زيـار کښ ولـس پـه شـانـی سترې ميرېيان

هـغـه مـرغـان، خزندګان،مـاهـی، مـهن څنګه وو ؟

څـه دی لـيـذلي چې ګـويـا ژبـه دی ګـونـګـه شـولـه

ووايـه لـږ چـې د افـغـان ولــس-وطـن څـنـګـه وو ؟

کـه دی کـوم وخـت کـې پـه غـلـطه هلته مخه وشوه

ورتــه ووايــه چـې پـرديس زوی ئې غمجن څنګه وو ؟

۹۷/۷/۱۸

# قواوزه

وايې چې قو په ژوند کې..........
يو ځلې مينه کوی،
او صرف همدغه مينه ، د هغه ژوند جوړوی

هغه د مرګ له پاره ، ځان رسوی همالته........
چې مېين شوی پکی.......
بی مهابا او بی اختياره ئې قوی او ځوان زړه،
دی درزيدلی، تپيدليو غوړيدلی چاته..

××××××××

غوارم د قو په شانی، د ګران وطن په غيږ کې
هلته چې ما له ده نه مينه زده کړه
هغه چې ما ورسره مينه کړی؛
هغه چې زړه او د بدن ذرې مې
تل تپيدلې ده ته،
دا خپل ځان ورسوم

۱۹۹۷/۹/۹

# ساندې

دلته هر ځپک ځپک ته ، د جنت ګوته په خوله ده
هلته کم دي یوی لویشت ته ، اووه واړه دوزخونه
د خزان ښکلا ته دلته ، پسرلی په حسرت ګوری
هلته ژمي کې غرق شوي د کلو کلو فصلونه
سره دي غاړه په غاړه رنګ او بوی په مینه دلته
هلته کرکه کې دي نغښتی، سره رنګ دي که بویونه
دلته ځمکه اسمان شنه دي،هوا شنه ده،اوبه شنې دې
هلته سری چینی خوټیږي، اوری سره سره بارانونه
د ماشین تور ښامار دلته نازوي د سارا کاڼي
د انسان په ګوتو لوټ شول هلته سم سمسور باغونه
دلته ژوند دی چې مستی کړي او خوټیږي هر ذره کې
هلته هر څه ته ولاړ دي په قطار قطار مرګونه
د ژړا مفهوم پردی دی، دلته ویر له خلکو هیر دی
هلته مړه دي احساسات ټول فقط ساندی دي ویرونه
دلته ستر ګې غړوم چې نو مې دا دعا تر ژړه شي:
د افغان له ملکه ورک کړی دغه ستونزی ، عذابونه

۹۵/۱۰/۵

# غوښتنه

زما د زړه له سوزه
تول ورځ لمر په اور کې سوزی او خوټیږی پسی
او........
زما د سوو فریاد و له لاسه:
سپوږمۍ او ستوري واړه،
په غم لړلې اوله و همه ډکې شپې راسره ،
ټولې رڼې تیر وي.
زه درنه څه نه غواړم
خو.........
د خپل لمر ، سپوږمۍ او ستورو په خاطر له مانه..
ددغه سوز او ددی شور،
ددی عذاب او دی غم ؛
ټولې ریښې او سر چینې لیری کړه.

۷۹/۱۰/۶

# قیامت

راته بل دی په ګوګل دننه اور
چې مې وسو په لمبو کې کلی کور
هره اوښکه مې سکروټه ده پری سوځم
وړوند شوم ،روڼ جهان مې شو تر پامه تور
دین ،دنیا مې د دوزخ یوه ګوښه ده
په لمبو کې به وی ډوب هم زما ګور
په هجران کې د جانان وطن سوځیږم
ور روان یم هر ساعت په هغه لور
دا زما په وطن جوړ ځنګه قیامت دی
پکې ورک چې دی د سل محشرو شور

۹۷/۱۰/۶

# افغان

د ژوندون له تناره نه پورته دود يم
دزمان پنجو کې زه يو مات سرود يم
له عدم نه مرور، هستۍ نه ستړی
د اختيار او د اجبار بندی موجود يم
د سجدو داغ مې په سر او پښو نه شته
نه د چا صادق بنده او نه معبود يم
د آسمان په زړه کې ستوری زما تت دی
ددې مځکې په مخ بی سيوري وجود يم
داسی خوب يم چې تعبير ئې کيدای نه شي
داسی وهم چې له هر زړه نه مردود يم
يم د کرکې له وطن ځينې راغلی
د وفا او محبت دملک کمبود يم

۹۷/۱۰/۲۷

# د افغان غم

د افغانانو دستر غم له پاره
ددغې لوئې نړۍ ،
زړه لا وړوکی برېښي.
ددوی د ساندو او د کریکو غږ ته ،
د نړیوالو او آسمان غوږونه ،
لا هم کاڼه دي کاڼه.
ددوی د حال او مصیبت لیدو ته
هر څوک ړانده دي ، ړانده.

××××

لکه چې دا وګړي ،
دلته پردي دي پردي ،
لکه چې دغه خاوره ؛
د کومې بلې دنیا
ډیر نا منلی ، کرغیړن سوغات وي.

××××

مو نږه نو چیرته لاړ شو ؟
مو نږه نو چیرته لاړ شو ؟
چاته خپل غم ووایو ؟
څوک به مو چیغې واوري ؟
څوک به مو حال ووینې ؟
څوک به مو خپل وګڼي ؟
څوک به مو خپل وګڼي ؟
مو نږه نو چیرته لاړ شو ؟

مونږه نو چیرته لاړ شو

۹۸/۲/۶

# لټون

زه به وای مجنون که می لیلا چیرته موندلې وای
یا می د جنون سیاله سارا چیرته موندلې وای
زه به د یما په څیر پاچا د آریانا ومه
جام ته مې د مینې که سوما چیرته موندلې وای
وخته چې په غاړه تا کچکول د ګدایۍ راکړ
کاش ! دې کوږ قامت ته مې امسا چیرته موندلې وای
ژونده ! ته به وریت وې د حسرت په تناره کې اوس
سوز ته د ارمان مې که ژړا چیرته موندلې وای
زه به د رسره ومه تر مرګه د زمري بخته
تاکې مې که څه لویه خطا چیرته موندلې وای

۱۹۹۸/۳/۲۱

# ژرنده

د عـــالـــم روزي ددب د غـــاړې حد ده
خو په خپله خواره برخه ئې صرف ګرد ده
خپــــــل قرارئې دی تل نوروته بخښلی
داتــــــلاش او د اسخـا ، خاصه دمرد ده

# ځوان

له غیرته چې لمبه په نام او ننګ شي
له غروره چې اسمان سره په جنګ شي
د کنګل په څیر اوبه چې شی له شرمه
چې د پوهې بلې شمعې ته پتنګ شي
چې مجنون شي د وطن د پاکې مینې
چې د جنګ ستری بلا سره په جنګ شي
چې له ظلم او استبداد سره دښمن وي
د انسان له ستر نامه چې په غورځنګ شي
په سرو کې هغه ځوان او پیغله شماره
چې سینګار یې په هنر او په فرهنګ شي

# پړ

ما به ویلی درته

«چې که دې پرېښودو وطن ، راسره»

دا د خوږمن زړه شیمه

اودا د دوه سترګو تور ؛

«د زړه کترې به درکوم

او تا به ساتمه زه»

خو زه دروغجن وختم.

د زمانې له لاسه و

او د روزګار غمونو ،

له دې زخمي زړګي نه ؛

تاته څه پرې نه ښودل

ټول ئې اوبه اوبه کړ.....

او رانه ئې خام ، خام وخوړ ؛

زه درته پړ وختم ،

او ژوندی مړ پاتې شوم.

# افغانستان

په دغه ځمکه باندی

له ډېره وخته دیخوا ،

نه چا کوم بیل ووواه

او نه د سپارې بریښید ونکې غاښ پری وازمایه ځان

نه د غلی دانه پری ښخه شوله ،

نه کوم نیالګې پکې رېښې وکړلې ،

پرخه پری پری نه وته ؛

ویاله پری تیره نه شوه ؛

نه کوم هرهټ یې مخ ته ،

لپه وروا چوله.

نه پری باران واورید ، او نه پری واوره ویلې ؛

نه د کوم کور د تهداب تیږه پکې کیښنودل شوه ؛

نه تری ګل و ټوکیده ، او نه هم شنه کبله ،

نه بی ثمره ونه ، نه د غنمو وږی ؛

نه تری ښه بوی وخاته.

نه کوم مرغه پری والوت ،

نه پری بلبل و چغید .

خو

د کنګ غرونه

له هری خوا نه جګ دي

له سپیرو د ښتو ځینې

د خړو کلیو له خوا

آن د کورونو له انګړو څخه ؛

چې تل قبرونه کینی

او انسانان ښخیږی؛

د انسانانو وینی

په سمه ، غرونو ، کاږو بوټو باندی...

د پر خی ، واورې او باران ځایونه ټول ډک کړی

هر چیرته وینه پرته....

هر چیرته وینه اوری....

هر چیرته وینه : بهیږی او بهیږی پسې...

دلته د وینو بوی دی ،

او د باروتو لوګی،

پر وریتو شویو غوښو ،

او د بدن پر غوځو شویو ټوټو ...

د ساندو کریکو او ژړا غږونه.

څوک شي نفس ایستلی ؟!

دلته هوا نشته ده ؛

ټوله فضا د انسانانو له روحونو ډکه...

او دغه خاوره ده مدام له ماتمونو ډکه...

۲۰ / ۶ / ۹۸

# د مصیبت غوغا

هره تیږه ده سکروټه، ټول وشـــګو نــه خــوږلــن جــوړ

هـــره ونــه ده شناخته، ټـــولـــــو پــاڼو نه کفن جـــوړ

د باران څاڅکي هم دلتــه لـــکـــه تنــدر راپـــریـــوځی

ټوله ځمکه خولا پـــریـــږده ،دی آسمان ورته دښمن جوړ

د هر بوټي په رګـــوکـــی د شهید ویـــنــه بهـــیـــږی

په هیڅ ځای به پیدا نه شی دژونــــدی - مړی بدن جــوړ

دیو لویشتی خـــاوره نشته چـــی خالی بــه وی له خلــکو

پــه هرګام کې یو څـــوک خښ دی، قبر هرچاته ماُ مــن جوړ

د ټوپکو تورو خولو کـــې، د قیـــامــت د شپیلی غــږدی

پری هرڅه زیر او زبر شـــول، کنــډوالـو کړ داوطن جــوړ

مصـیبـت دی چـې غـوغا کړی دافغان ولس په ځمــکه

جنګ ،سیلاب او زلــزلوکـــړ له دې ملک ځنی مدفن جوړ

# ګردله

هــره مور ده بــوره شــوی هــرې خورنه ورونه ورک دي

ځلمي ورک دي ، پیغلې سپکې،دهر چا قبرونه ورک دي

سور سیلاب دځــوانــو ویــنــو ،ټــول وطن په مخه کړی

ګــردلــه ده دحــالاتـــو له هـــر چــاکورونه ورک دي

۹۸/۶/۲۵

# غبرګې نیشې

یو خواته دیار سترګې، بل خوا پیمانې ایښې

دا مې په نصیب کې نن ، څه غبرګې نیشې ایښې

دا دي لـــه حیـــا ډکـــې ، هغه هوسونونه

یو خوا مې اوبه د ژوند ، بل خوا یې لمبې ایښې

دا خواږه ستونه کړي ، هغه اشاري پـــه نـــاز

لاره رانه ورکه ده ، هر خوا مې ایینې ایښې

دا به نظر وثبنم ،وابـــــه ړوم دا پـــــه سر

ټولو مې جنون ته دي ډیرې بهانې ایښې

دلته ولوله د عشق ، هـــلته بیخودی د ژونـــــد

عقل او زړګي ته مې دواړو زولانې ایښې

۱۹۹۸/۷/۳

# غزل

چې غوغا ترینه د سوو زړونو خیږی
دا د ښکلو تور اوربل نه دی نو څه دي ؟

چې په یو نظروژل کوی د سلو
تورې سترګې یې اجل نه دي نو څه دي؟

چې پرهار یې مسیدو ته هو سیږی
دا سی شونډې چې درمل نه دي نو څه دي ؟

چې د تن په وینو سره، مدام تپیږي
د جفا د تیغ بسمل نه دی نو څه دي ؟

عاشقان په کې خپل تور بختونه وینئ
دا بلاوی تور کجل نه دي نو څه دي ؟

چې جانان درته په مینه مینه ګډ وی
دا خبرې که غزل نه دي نو څه دي ؟

چې یې هر څه په رڼا ورځ رانه لوټ کړل
له غمزو دی ډک کتل نه دي نو څه دي ؟

چې د مینې سره ډګر ته میړنې ځي
دا زمري زړونه اتل نه دي نو څه دي

۱۹۹۷/۷/۱۴

# د لیمو په زړه کې

ځم چې انتظار، د شوګیرو په زړه کـــې وکرم
ستوری به د بخت ،په لیونیو چیغو ویښ کړمه
شیندی بیخودي چې هرې خواته ولولې د عشق
مات چې کړم رونق زه د مانی او د آرژنګ د ښار
وخت ته به زیندی دتا له تورو زلـــــفو واچوم
یو خواته مستي د پیمانې بل خوا د یار ستر ګې

وصل د جانان به ، د سپیدو په زړه کې وکرم
سوز د نامرادی به ،د تیارو په زړه کې وکرم
خپـــل تږی نظر به، د پردو په زړه کې وکرم
ستا دناز تصویر به، د لیمو په زړه کې وکرم
تخـــم د غماز به، د ایرو په زړه کې وکرم
را چې د زړه زنی ، د لمبو په زړه کی وکرم

۱۹۹۸/۷/۱۷

# چور

د وصال بزم ته راوړې جام د شـــــونډو
داسې ښکاري چې جنت ته انطهور وړې
چې دې خوی ته په حسرت کې ښــا پــیرۍ دي
د هــرې یوې زړه ته داغونه د ناسور وړې
چې په هر پل کې د نـــازبـــزغـــــلي کرې
د عـــالــم د زړو نیازونه بهضرور وړې
چې د شونډو غوټۍ وســـپړې خـنـــدا ته
غـــــوړیدلی باغ ته ،ته د ګل تربور وړې
چې ښکاره شې جـــنازو بـــانــدې د هیلو
د مـــاتم محفل ته یې ته موج د سرور وړې
سترګې جام ،شونډې پیاله ، تن دې ښیښه ده
یو جهان تاکستان زړونه، ته په چور وړې

۱۹۹۸/۷/۱۶

# ته او زه

ستا د مینې تاج په سر ، لکه پاچا یم
خو کچکول مې د دیدن په لاس ، ملنګ یم
چې تصویر ستا د ښکلا مې دی لیمو کې
د بهزاد د پلار استاد ، سیال د آرژنګ یم
که د ژوند د شپو تیارو ته مې ډیوه یې
زه دې هم د پلوشو سوی پتنګ یم
د زلال په څیر ، ته مړو ته ژوند بخښې
خو زه ځانه ته هم د سوی زړګي زنګ یم
ته اسمان یې د هستۍ دې لوی جهان ته
زه بې تانه د نیستۍ یو لوی ګړنګ یم

۱۹۹۸/۷/۱۷

# تیاره او ستوری

زمونږ پر کلي باندې،

تو ره تیاره خبره ده

ټول شیان تت دي، څوک څه نه شي لید ای

د تورو وریځو لړۍ

دي هرې خو اته تللې ،

کله ناکله لا د ژمي د سیلۍ غړونه ،

زمونږ پر زړونو باندی

نوی واهمه خپره کړي ،

خو دغه توره شپه کې ،

هاغلته لیری د اسمان په ګوټ کې ،

یو سپینکی ستوری ښکاری ؛

له لیری ،لیری نه دی ،

د یو ماشوم په شانې ،

له لا یزاله انرژۍ ځینې ډک ..

چې تل لاس اچوی د مور وینښتو ته...

مدام دا هڅه کوی ،

تر څو د لمر شغلو نه ،

یو څه را کش کړي ځانته ،

او د تیارې په لور ئې

چې ئې زمونږ پر کلي

تور څادر خپور ساتلی

د سوزیدونکو ...

ځلیدونکو...

څو نیزو په توګه

بې زغرده و غورځوي ؛

او زمونږ کلی خپل نظر ته خلا ص کړی

خو دغه ستوری مونږ نه ،

او رڼا ئې نه د لمر ؛

ډیر زیات ګونښه پروت دی ،

او د تیارې دا سارا ،

ډیره اوږده پرته ده .

* * *

چې ورته ځېر شو مه ښه ،

هلته هیڅ ستوری نه شته ،

څه چې لیدلی وو ما ...

هغه زمونږ د امیدونو یو سراب غوندې وو...

چې د دې شپې په زړه کې...

لا هم ویده دی ویده.

# ښکلې شوې زړه

مدام په خوب او ویښه،...
یمه لګیا او یو تصویر کاږمه....
یو بې مثاله تصویر ،
چې د هنر او د خلقت یو لوی شاهکار وګرځي،
چې چا تر او سه لا ایستلی نه وی:
د نامرادیو ،بد بختیو او غمونو تصویر ،
د ولږې ، فقر ، دژړا او ددردونو تصویر ،
...د بې کوریو تصویر،
د جنازو او دهجرت دبې پایانه بهیر ،
د کړاوونو ،عذابونو او ظلمونو تصویر ،
په تیارو شپو کې د وحشت او ستمونو تصویر........

××××××××××

لاس مې ور اوږد کړ چې قلم را واخلم
زما قلم د شهیدانو د جنډو لرګی وو ،
رنګ مې له اوښکو او له وینو څخه ،
او د باروتو له لوګي......
او د لمبو له شرارو نه جوړ وو ؛
ما د نظر په تخته.....
دغه تصویر کاږه لا ........
لا پکې بوخت ومه زه ،
کار مې تمام څه ، چې لا ډیر پاتې وو ،
چې د تصویر په زړه کې

راته یو زړه څرګند شو........
یو را ښکیل شوی ، زبیښل شوی ،
او له درده ډک زړه.

××××××

چې ورته مې کتل
دا زما خپل تصویر وو ؛
زما دتن ، زما د ځان ،
زما د ګران او وران وطن:
«افغانستان» تصویر وو

۹۸/۷/۲۱

# د غرور نیشه

چې د پاڼې په څیر جګ ګوری اسمان ته
د خزان سیلۍ ئې کړي تر پښو لاندې
د غرور او خودخواهي نیشه کې غرقه
بیا به ژاړې نن په کومه خوله چې خاندې

۱۹۹۸/۷/۲۳

# پردیتوب

آسمان له ځمکې خفه ،
سپوږمۍ له ستورو ځینې ،
باران د وریځو له تروه تندی نه،
سیند د اوبو له شور او زوږ ځینې کوږ ،
پاڼې د څانګو دډارونو له رسیو څوړندې ،
چمن له بوی او له سروره خالي ؛
سارا نه تښتي لیونتوب په منډه ،
او به له اوره سره لاس او ګریوان.
تیږې له غره ښوئیږي.......
خاوره له ځمکې تښتي .......
عقل له مغز سره تربور غوندی دی.
وینه د زړه له لاسه داړې وهي ،
میینان تول دي له یو بل ګیله من ،
ګلان ، بلبل او له بورا زړه تورن .
ساقی له میو او پیالو ځینې موړ ؛
ورونه له خویندو او له میندو بیزار ؛
خپلوان په خپلو کې پردي دي پردي........

×××××

دې پردیتوب کې دې هر څوک بې وسه ،
د خدای خدائې ناکامه ،
د بنده هڅې ستړې ،
له تدبیر لاره ورکه.

××××

نو خندا ژاړي ورته ،
او غم له مستې خندا شین ښکاریږي ،
دې پردیتوب هر څه له هر چا بیل کړل.......

د ۱۹۹۸ نوامبر

# ښیرې (۱)

ستا جنت جنت وطن ته ،زه دوزخ، دوزخ اور غــــوارم
لکه خپله ورانه خونه ، ستا محل هم نسکور غـــــوارم
ورور دې ودراوه ورور ته ، خپل بچی دې په بلار مړ کړ
ستا په کلي لوی شیطانه،تر دې بدلا څه نور غـــــوارم
حضیره دی هره لویشت کړه ،هره تیږه دې شنا خـــتــه
تاته هم په هر څپک کې ، ستا بچیو ته ګور غـــــوارم
زما په پاکه خاوره راغلل ، ستا ناولی راکـــتـــونـــه
ستا په خپل ناولي بڼ زه ، د محشر شر او شور غوارم
د فساد په نېلي سپوره ،د ګـنـاه د ملک بـــــاداره
ستا د کبر خونی غاښ ته د افـــغان د مټ زور غوارم
چې آزار ئې چا اخیستی ، ورته اور په لمن پروت دی
ستا د خپل تر بور په شانی ، تاته هم دا پیغور غوارم
دافغان د پګړۍ ولونه ، هر غـــــلیم ته زولانې دی
انتقام کی ئې د وینو دغه دار درتـــه خـــــپور غوارم

۱۹۹۸/۱۱/۲۶

(۱)دا ښیری بیل کلینتن ته زمونږ په وطن د هغه د راکتی حملی له درده لیکل شوی

# د ګلو څېږو حسرت

ســتا پــه تــورو زلفو کې سپین ولګید
یا په خړو وریــځــو کــې بریښنا شوله؟
دا د تور تمونو څادر څــیــری شـــو
یا خپره د لمر د څــرک رڼـــا شــولــه؟
دا خــپــلې ځــوانــۍ ته دې لوګی وکــړ
یــالــمــبــه زمــا دزړه دنــیا شــولــه؟
څنګې دې قودۍ ،قودۍ کوڅۍ نه شوې
ماتــه مــې د ښــکلو هــیــلــوملا شــولــه
مــینــه مــې په خپل اور کې پخه شوله
پــریــږده چې رسوا شي چې رسوا شوله
ســتا د ویــښــتوهــرتــار او هرخم او پیچ
ماتـــه د ژونـــدون ښــکلې دیــبا شوله
تــل دې پــســرلــی د تن تازه واوســـه
پــورتــه مــې لــه زړه دغــه دعــاشوله

١٩٩٨/١١/٢٦

# ګناه

څــو مــره چــې ده لــویــه د تــو بې ګناه
هــو مــره ده خــوږه د پــیـمـانـې ګـنـاه
دغـــه پـــښـــتــون ســر د تیټیدو نه دی
نـــه مــې ده پــیـرزو پرې د سجدې ګناه
هــغــه د مـــنـصـور غوندی رسوا نښه ده
ورکـــه شـــه نـــا ولـــې د پـــردې ګـنـاه
مـــیــنــه کـــې دې دواړه جـهـانونه پټ
ځـــکه ده خـوږه د یـــارانـــې ګـــنـــاه
ســو زی چې پتنګ ځان په لمبه د عشق
څـــه ده پـــه دې مـــنـځ کې د ډیوې ګناه
وچ لـــغړ اغـــزی تـــه هـــرڅوک بد وائې
پــــټــه ده د ګـل او د غـــونـچــې ګـــناه
لـــمر ئـــې پـــه ځـــیـــنـدی د مکر وواژه
نـــه ده د بـــخـښـــلود تـــیـارې ګـــنـــاه
ای چــې پـــه نامه کې دې انس موج وهي
چــا کـــړه درکـــې ځـــای دا د کینې ګناه
هر یوه ته ئـــې تـــوره د مـــذهب ورکـــړه
څـــو مـــره ده درنـــه د زمـــانــې ګــناه

راچې نور د کفر ثواب وګڼو
بس ده د ایمان او د کعبې ګناه
وزغمه زمریه ناکردې د دهر
وانه خلې په غاړه د ګیلې ګناه

۱۹۹۸/۱۲/۲۸

# افغانۍ ښځې ته

د ګناه په وحشي غېږ کې
لکه شنه پاڼه رپېږې
د شهوت د زمري مخ کې
د هوسۍ غوندې ترئېږې
د هوس په ظالم لاس کې
بازیچې په څېر لوبېږې
د قوت او زور پنجو کې
ګل غوټۍ غوندې رژېږې
خوشحالۍ ته دزړه دارو
ته چورلېږې او ګډېږې
د خپل لوټ عزت په مړي
زار ژړېږې او سو ځېږې
د دنیا په تور بازار کې
لکه وینځه ئې خرڅېږې
د رواج او رسم بند کې
پېغلتوب کې لا ورستېږې
د روزګار د سېلۍ مخ ته
لکه شنه نوده ماتېږې
د ژوندون د پېټۍ لاندې
د بسمل په څېر تپېږې

په دنیا ختلی لمر دی
ته تیاروشپو کې اوسیږې
لږ دې حال ته نظر وکړه
لا به کله راو یښیږې
له دی ژونده مرګ بهتر دی
ته په دې هم ښه پوهیږې
د بدلون فکر پیدا کړه
پرې له دې حاله خلاصیږې
په تدبیر او په همت خپل
د آسمان بام ته رسیږې
پاڅه پاڅه وخت روان دی
ته لا- بیرته پاتی کیږې

۱۹۹۸/۷/۲۵

# سره ، شنه ، سپین

کله چې هر څه سره وو
که هر څه سره ښکاریده ..
نو د پوښتنې ځای هیڅ پاتې نه وو

خو چې د شنو دوران شو
بیا هم شنیلی او پاڼې
چې له پسرلي تر مني
همیشه شنې بریښیدې
د شنو په نوي پسرلي کې
لا هم.......
هاغسې سري ښکاریږي
خو ولې ؟
اوس چې د سپینو وخت دی
نو د مالو چو او د واورو رنګ هم
د پخوانیو سرو د وخت په شانی
په وینو سره ښکاریږی ؟

۲۵/۱۹۹۸/۷

# هیڅ نشته

د بخدي لوړو برجوکې
سره او شنه تو غونه نشته
د دې ښار ګڼو کوڅو کې
د ژوندون شورونه نشته
دیما د لاس ګوربت ته
د پرواز وزرونه نشته
د آرین په نغري کې
د زردشت اورونه نشته
د تیارو خدای باچاهی کړی
میترائې فکرونه نشته
د ویدا افسانه ګونګه
د نیسانازونه نشته
د غاټولوبوټي سوي
د هوما ګلونه نشته
د مستۍ بزمونه غلي
د سوما جامونه نشته
په کردار، ګفتار، پندار کې
د نیکو خویونه نشته
د باګرام په معبده کې
د اوشاس رقصونه نشته

د کــوشان لوی مدنیت هیر
د فرهــنـګ ویاړونه نـشته
د ضحاک دښامار غاښ تـه
د کاوه زواکــونــه نــشـــته
ایــمل خان ـ دریا خان لاړل
د خوشحـــال ننګونه نشته
په ایلبند او ســردرو کـــې
د شــپنو غــرېونــه نــشــته
آمـــو ژاړي آبـا سین تـــه
چـــې اتــل مــیـړونه نشته
د پــامیر په زړه کې اوردی
پکې ســره لالــونه نـــشته
هــر خه مړه دی هرې خواته
د پاڅــون ســوچونه نـشته
د کاغــانــو بـازار تـود دی
د بــلـبل غــرېونــه نــشـــته
د ګــیـدړو پــه دوران کــې
د زمــرو وخـــتــونه نـشـته

۱۹۹۹/۴/۹

# شیخ ته

تــه د طــهــورو پـه خیالونو کې مست

ته د غلمانو په خـوبـونـو کې مست

ته د حورانو د نـــازونـــو نـــیـــشـئه

تـــه د کـــوثـــرو په موجونو کې مست

تـــه د جـنـــت د بـاغ او ګل لـــیونی

تــه د عــقـــبا پـــه لذتونو کې مست

تـــه پـــه ثـــواب پسی سرتوره ملنګ

تـــه بـــه تـوبو او تکبیرونو کې مست

تــه د ازل پـــه لاس جـــوړ شوی غلام

تـــه د پـــردیـو پـــه دامونو کې مست

تـــه د تـــقـــدیر ځنځیر په غاړه ګرځې

تـه د قـسمت پـه تـالابونو کې مست

ته د معروف او منکر چیغې وهې

تــه پــه ګـناه او عــذابونو کې مست

تــه دې وهــه د عــقــل لا فــې شیخه

د جـهل پلا رئې په وهمونو کې مست

تــه بــه زمري ته سمه لار څه ښئې ؟

ئـــې پـــه ګمراهو تدبیرونو کې مست

۱۹۹۸/۱۲/۲۸

# د ژړا ملګري

زه خپلو یادونو سره ژاړمه

ځکه فریادونو سره ژاړمه

اوښکې مې شو کارې لګوي په مخ

خود به له سوزونو سره ژاړمه

خپلو ته مې هم چې ډېر پردي ښکاري

زه داسی غمونو سره ژاړمه

زړه ځې کړ سوری راته ،ځيګر ويلې

دغسی دردونو سره ژاړمه

کريکه مې د سوز ،د بريښنا منډه ده

مستو توفانون سره ژاړمه

نخښه د کوم ټپ مي په صورت نشته

پټو پرهرونو سره ژاړمه

تښتي مې له روح نه د دوزخ لمبې

داسی عذابونو سره ژاړمه

وبه چوی که تیرې ته ئې ووایم

زه د زړه حالونو سره ژاړمه

هر بند کې ئې موج وهي دزړه وینې

تل چې مې شعرونو سره ژاړمه

خوله کې د غربت ددیو پریوتی یم

ډیرو حسرتونو سره ژاړمه

وای چې د وطن ددنگو غرو زمری

سوو امیدونو سره ژاړمه

۱۹۹۹/۴/۱

# کابل وسو

کابل وسو ،نازولی کابل وسو
د وطن د مور دا ښکلی کاکل وسو
چې اغزي وو د پردو د بدو سترګو
د افغان د پګړۍ سرکې ،سور ګل وسو
د عطرونو پرځای خیرې تري لو خړې
غاټول وسو ،ګلاب وسو ، سنبل وسو
د غرور تندی ئې مات شو سترګې تتې
د مکار خزان له لاسه بلبل وسو
چې له موټې ئې قوی سوک وو جوړ شوی
نامردیو ئې ټول توان تحمل وسو
چې راټول وو پری خواره و اره وګړي
د نااهلو اولاد و تغافل وسو
سر ببر ،ټټر شوکارې ،مخ شکیدلی
دې حالت ته ئې پردی وو که خپل وسو
بشري تاریخ پری سوی لوغړن شو
بې تاریخو چې لرغونی کابل وسو
چې لوګی ئې وای ښکلا ته ای زمریه
چالمبه کړه په نظر ،په منګل وسو

۱۹۹/۴/۲

# وران کابل

کابل وران شو ،په لمبو کې جلبل وسو
د وطن د میړنیو اتل وسو
چې عشرت ته ئې حسرت کې سوځیدل ټول
د دې غرونو شنه لمن او ګوګل وسو
لودن ورک شوله هر چا نه ،زمان ورک شو
نن لمبه شو په لمبو کې، ازل وسو
مرګ یاغی شو ،خپل پردي ورځنې ورک دي
عزرائیل ئې کړ ستي او اجل وسو
چې وو تږی تل د سولې-پخلائینې
کرکې وران کړ په جنګونو ،جدل وسو
هیڅ زړه سوی او صرفه چا ورته ونه کړه
په جامه د کاروانې کې ،تورغل وسو
ټول بدن مې شو لمبه لمبه پری سوزي
د زړه تل کې مې بل اورد بدل وسو
د ګربت دا ځاله ورانه ،بچي ئې وریت شول
د زمرو د استوګنې بورجل وسو

۱۹۹۹/۴/۲۰

# بدله زمانه

ورکې د ژوندون خوږې نغمې شولې
جګې د سماع او وعظ نارې شولې
دروند ثادر د مرګ دی په دې مينه پروت
هر خواته قبرونه وحضيرې شولې
هر چرته ده ګرمه دلمبو قصه
هر ثه پرې لوخړې او ايرې شولې
دلته اوس سودا د مرګ او ژوبلې ده
نوی ئې دلال او معاملې شولې
چيرته چې ښکالو باندې بنديز لګي
غلې پرې نغمې او ترانې شولې
غيږه کې زمری نه ګيد روګټه
ځکه ،اوس بدلې زمانې شولې
چيرته خفاشان چې پاچاهي کوي
ورکې ترې رڼا او سپيدې شولې
هر چنې ساقي شو د رضوان د جام
هيرې ورنه سوال او وظيفې شولې
ټول وينې خواره کړل د طهور طمعې
سور پکې جهاد او سرې سجدې شولې
خوب او خيال د حورو او غلمانو دی
ګرمې د جنت.دوزخ قصې شولې
تور جلاد هم سپينې جامې واغوستې
حکم ئې قصلص او يا دورې شولې
بس مرداري ګيري،غوړې ثنې دي
ورکې د افغان جګې شملې شولې
سر نشته وسرور نشته، سالار نشته
سترګې د غيرت ټولې وړندې شولې

# د غیرت څریکې

«چې له ګرده د پښو ئې، پس له مرګه هم آمـــان غــوښت»
د هغه خوشحال په قبر ، ښکاري اوس د پردو پلونه»
د «میر ویس» ټول ارمانونه، نن د شرم ډنډ کې ډوب شـــول
د وطن د مور په وړبنو ،بیا ګرګین ښخ کړل غاښونه
د « احمد» غیرت او برم ، بې ننګیو کې ورک ښـــکـــاري
د نا اهل اولاد له لاسه ، وړي د سیالو پیغورونه
په هر ځای کې ښخې ښکاري ،د تورتم خوني منــګولـــې
په تیارو کې دي لارورکی «روښاني» عالي فکرونه
د « ملالې » دروند پړونی ، بې ستریو ته پـــرده شــــوه
د «نازو » په نامه خاندي ، د بازار هر جائې نجونه
«مسجدي» دی که «ملا» دی، د مسجد له نـــامــه تښتي
په کلدار او ریال خرڅ شول ،هم مذهب ،هم ایمانونه
«ابا سین»«آمو »ته ژاړي، د «هلمند » اوښکې شوې وچې
چې اوبو په ځای ئې زړو کې ، د سرو وینو دي موجونه
«هندو کش» په سپینه ږیره ،ر نې اوښکې دی بهیــــږي
چې په تور بازار ئې خرڅ شول ، ټول د سرو زرو کانونه
د هغو د غیرت څریکې ،نورې غـــــلــې او ویدې دي
چې په ټیټو سترګو ئې وڅښل د پردو د جام بنګونه
د افغان ستره ټبره ، سترګې وغــوړوه پـــاڅـــــه !
ستا وطن ته دي نیغ شوي د نیستی ترخه ګواښونه
ننګ دې څه شو نوم دې څه شو ؟عزت څه او پت دې څه شو ؟
د «اکبر» له ګوره خیږي ، داسې چیغې فریادونه
د پلرو د تورې بریښ لاړ ،اسارت په زنګ کې ورک شو
د خپل ورور په زړه دې تش کړل ،د پردیو تو پکونه

د پردیو تر لاس لاندې ، نه عزت شته او نه پـــــت شته
دې دنیا کې تل سرلوړي ، ټول خپلواکه ملتونه
سر هغه دی چې شو پورته ،مټ هغه چې وښـــوریـــږي
تل ژوندي هغه ځلمي دي ، چې آزاد ئې کړل ځانونه

ځه زمریه تری لوګی شه ،چې نظر ئې نه شي توره
چا چې غوڅ کړل په میړانه ، د پردو سر او لاسونه

۱۹۹۹/۵/۲

# بلنه

ځي چې له وطن نه رنګ په رنـــګ غمونـــه وکرو
څه چې مو کرلی دی هغه فصلونه وریبو

پاکې ارادې او نیکې هیلې که سر خـــوره شـــوې
ځې چې د ناولو سر خورو ، سرونه وریبو

کله د چا لاس، کله پښه او کــــله ســـر غـــوڅ دی
دې د ژوند لوګرو نه خوني لاسونه وریبو

هر یو د خپل پلار او د نیکونو دعـــا ګـــویه کړو
ځي د کفن کشو ددوران ، وختونه وریبو

هر څوک وائې څه په ما ئې څه؟ مـــا هر څه کړي دي
ځان نه را تاو کړي ، دا غلط خیالونه وریبو

څو پوری به خپلو کې د جنـــــګ شرم ته غاړه ږدو
ځي چې ټول وطن نه ،د نفاق تخمونه وریبو

څومره بې ننګي ده چــــې د بل دلاس آله واوســـو
خپل لاسونه یو کړو ، دا پردي زواکونه وریبو

څو چې سوارې ئې شې نیزې تیري کوونــــکو ته
دوی چې دي کرلي ، دا اغزن ګلونه وریبو

دې و حشت ته غلی کښیناستل پخپلـــه جرم دی
ځي چې د عمل د لا س او پښو بندونه وریبو

قبر د شهید به کړو سنګر او شناخته ئې سپر ځانته
تورو او نیزو ته به دا ټول توغونه وریبو

در س به د عبرت ورڅخه واخـلو مستقبل ژوند ته
ځمکې د ماضي نه به کره درسونه وریبو

دغه د تاریخ د آزموینې نوی دور دی
پا څیږئ زمرو چې د بري خوندونه وریبو

۱۹۹۹/۵/۳

زما د شعرونو یوه مجموعه چې نوم مې ورته« د لمبو کلی» ایښی وو ،د کابل له دولتي مطبعې او یو شمیر نورو کتابونو سره یو ځای د مجاهدینو به لاسو وسوځیده ،دا شعر په همدې مناسبت لیکل شوی دی.اوس چې د نوموړې مجموعې شعرونه را سره نشته او له وطن نه هم «د لمبو کلی» جوړ دی نو دا مجموعه مې هم دا سې وتوموله.

# د لمبو کلی

وسو په لمبو کې د لمبو کلی　　　دا د ښکلو هیلو او اسرو کلی
هره خښته ئې زما ټوټه دزړه　　　خټه ئې په وینو وه لمده دزړه
وه هوائې مسته ولوله د زړه　　　دا مې وو د روح د اوسیدو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی
هلته اوسیدل مې امیدونه ټول　　　هلته غوړیدل مې ارمانونه ټول
هلته نڅیدل مې هوسونه ټول　　　دا زما د ټولو اندیښنو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی
هلته جذبې مې د ځوانۍ پټې　　　هلته انګازې مې دیارۍ پټې
هلته مې د زړه بې قرارۍ پټې　　　دا مې وو د مستو ولولو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی

هلته احساسات ټول خوبیدل زما　　　هلته ټول رازونه ښکاریدل زما
هلته ټول غمونه بلیدل زما　　　دا مې د ښادیو او غمو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی
هره پوله ئې حد وو د غمو زما　　　هر پټی ئې کښت د ترانو زما
هر بوټی ئې ځاله د آرزو زما　　　دا مې د شنیلیو او ورشو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی
هر انګړ کې جوش وو د ژوندون غلی　　　هر کور کې جنون وو د هامون غلی
هره خونه کې ئې نن،سبا ،پرون غلی　　　دا مې وو د غلو تو فانو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی

هر خوا ته ژوندی وې د پاڅون هڅې — هر خوا غرېدلې د لټون هــڅې
هر شی کې تودې وی د بدلون هڅې — دا مې وو د ځوانو تلوسو کــلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی

هلته کلمې لکه سکروټې وې — هلتـــه ارادې تر پولاد کلکې وې
هلته پیمانو نه ټولې ګټې وې — داو و د زیـــارکښو پرګنو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی

دا کلی وو جوړ مې له شعرونو نه — ښکلو څلوریـــځـــو غـزلـونو نه
جوړ وو له روانو سیلا وونو نه — دا مې د احساس د پـــلوشـــو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی

بل پرې مجاهدو سره اورونه کړل — جګ ئې ورته زړه نه تور دودونه کړل
خاورې او ایرې ئې سره لالونه کړل — جوړ تری شو د ورانو کنډوالــو کلی
وسو په لمبو کې د لمبو کلی

# سم اټکل

زه دې يم شاعر او ته غزل زما
ته مې تلوسه او ته تکل زما
بار د ژوند په ولو سرگردانه تل
زه يم مسافر، ته سر منزل زما
هر خوا دمې کوهي او گړنگونه دي
ته د کربليچنو لارو مل زما
زه بندي د غم د تورتمونو يم
ته دغو تيارو کې ئې مشعل زما
زه د ناهيليو د کوهي يو سف
ته مې ئې نجات او ته اجل زما
دې ترخو يادونو کې چې پائمه
ته مې ئې خواږه او ته عسل زما
زړه خو دې به يو ځل رانه وړی دی
راشه يو ځل بيا ،ډک کړه گوگل زما
ته به مې د ژوند د پائښت ستوری شې
سم مې وو بس دغه يو اټکل زما

۱۹۹۹/۵/۱۳

# د مینې زمرۍ

هغه د حسن ښاپیرۍ ده ، د ښکلا فرښته
له حیا ډکه شنه غوټۍ ده ، د وفا فرشته

هره اداء ئې د نظر ، په زړه خوښې راولي
د شنه چمن مسته هوسۍ ده د حیا فرشته

په ترنم کې د غږ،روح ته ،زندګي ورکوي
د موسیقي د ملک شهۍ ده ، درنها فرشته

د تن له عطرو ئې وږمه د پسرلي اخلي ساه
تړلی کان د خوشبوئۍ ده ، د بقا فرشته

هره غمزه ئې ددو سترګو ،یو زر غشي ولي
د شنه اسمان سخته ږلۍ ده د بریښنا فرشته

ځمکه اسمان ئې دښکلا د جلوو لمر نیولی
د ټولو حورو شهزادګۍ ده، ددنیا فرشته

زمریه پام چې د هوس په دام ئې کینوځې
د پښتنې مینې زمرۍ ده،او زما فرشته

۱۹۹۹/۵/۲۴

# عرش

مینه ژوند کې د انسان ، یــــو خزانه ده
دا د ټولو زیـــورونو دُردانــــه ده
د احساس او عاطفې د اسمان عرش دی
د خوښــــیو او غــــمــــونو تازیانه ده

۱۹۹۹/۶/۲۰

# د کاله اور

مینه څه ده ؟ د ژوندون د کـــاله اور ده
بې له مینې د انسان زړه سوی سکور ده

یا د اور او د کــــنګل یوه ټوټــه ده
یا د تو رو تیارو تل کې یو زوړ ګور ده

۱۹۹۹/۶/۲۰

# مینه څه ده

مینه حسن ده ، وفا ده او ښکلا ده
مینه شور د ژوندګي ده او رڼا ده
د غرور او د غیرت د تاج الماس دی
مینه نن، مینه پرون، مینه سبا ده

۱۹۹۹/۶/۲۰

# مینه

مینه ګل ده ، په ګــلــزار د سړیتوب

مینه لــمر ده په سهـــار د سړیتوب

مېنه ګنج ده چې بها ئې مونده نه شي

نه خرڅیږي په بــازار د ســـړیتوب

۱۹۹۹/۶/۲۰

# د اوبو تصویر

ته لکه غوټۍ د حـــیا شنـــو پاڼو کې پــټه ښـــه

زه د تا په عشق کې لکه ګل غوندې رسوا خوشحال

ته زما دزړه صدف کې، ښکلې مـرغـــلره ئـــې

زه دې پـــه بـــازار د محبت کې په سودا خوشحال

ته بله ډیوه ، د شیشې منځ کې تل رڼـــه واوسې

زه لـــکه پتنګ دې پـــه طواف او په رڼا خوشحال

ته پښتنه ناوې ، د عفت شـــالـوکـــې پټه ئې

زه لکه مـــاشـــوم دې ددیـــدار په تمنا خوشحال

ته د اسمان ستوری، رسیدل درته مهال بریښي

زه ورک مسافر ،دې په جلوواو پـــه ځلا خوشحال

ته لکه ایمان مې ، د وجود په ذ روبـــره ئـــې

زه د عشق عاصي دې په وعده دنـــن سبا خوشحال

ته ئې داوبو تصویر ، چې لاس دروړلی نه شمه

زه دوصال تـــږی ،په سراب یم د ســـارا خوشحال

ته لکه هوسۍ د تـــرئـیـــدلـو او ښکلا مثال

زه لـــکه زمـری دې د خـــرام پـــه تماشا خوشحال

۱۹۹۹/۶/۲۰

# لټون

زه به وای مجنون که می لیلا چیرته مونـــدلې وای
یا می د جنون سیاله سارا چیرته موندلې وای
زه به د یـــما په خیر پـــاچـــا د آریـــانـــا ومه
جام ته مې د مینې که سوما چیرته موندلې وای
وخته چې په غاړه تا کچکول د ګـــدایۍ راکـــړ
کاش ! دې کوږ قامت ته مې امسا چیرته موندلې وای
ژونده ! ته به وریت وی د حسرت په تناره کې اوس
سوز ته د ارمان مې که ژړا چیرته موندلې وای
زه به د رسره ومه تـــر مـــرګـــه د زمري بخته
تا کې مې که څه لویه خطا چیرته موندلې وای

۱۹۹۸/۳/۲۱

# د اندیښنو لړۍ

شپه دې د زلفو سلسلو اوږده کړه
که ما په دې ښکلو قصو اوږده کړه
شم له دې نیم نفس ژوندون نه لوګی
چې ستا ارزو ئې په کلو اوږده کړه
یو غمزه وه ،د بڼو له شانه
چې ئې لړۍ د اندیښنو اوږده کړه
کومې اداء ته دې قیامت وو ایم؟
ورځ خو د مخ ، په پلوشو اوږده کړه
نه مړیدم دې ،په دیدن باندې زه
چې مې خبره په ورو ورو اوږده کړه
زمریه !سترګې له دنیا نه پور کړه
لحظه د وصل په کتو اوږده کړه !

۱۹۹۹/۶/۲۱

# د مراد ځرک

له حسده لیونی شم ائینې ته
چې نیولی ئې په غیږکې ستا تصویر دی
حسنه تا دا شورماشور په دنیا جوړ کړ؟
که شکولی مې مجنون عشق ځنځیر دی
نظرځنګه لار پیدا کړي ستا لیمو ته؟
چې مد هوشه دې د مح رڼا ته ځیر دی
دا د مشکو قافله په دې لار راغله؟
که خرام کې چیرته بیا زما نخچیر دی؟!
چې په هر قدم کې، سل ځایه لګیږي
دا زما په تندی لیک، څنګه تقدیر دی؟
د مرام په غره به، ځرک د مراد وشي
هسې نه چې بې پایانه دا شوګیر دی

۱۹۹۹/۶/۲۵